

# د چین او جاپان لانجه په څه ده؟

قاري حبیب

له څه مودې راهیسې به شاید له راډیو ګانو څخه اورئ چې د چین او جاپان ترمنځ مناسبات خړپړ شوي دي ، څه موده وړاندې په چین کې دجاپان په ضد سختې مظاهرې وشوې ، دغه راز په ډیپلوماتیکه فضا کې چیني او جاپاني چارواکو او مطبوعاتو دیوبل په وړاندې غیرعادي اظهارات وکړل ، داچې دنړۍ دغه دویم ( چین ) او دریم ( جاپان ) لوی اقتصادونه ولې له یوبل سره مخامخ شوي دي غواړو په دې لنډه لیکنه کې ورته اشاره وکړو.

چین او جاپان دختیځې آسیا دوه مهم سیال هیوادونه ګڼل کیږي ،دا هیوادونه نه یوازې په سیمه ایزه کچه مهم رول لري بلکې په نړیواله کچه هم له اقتصادي اړخه دنړۍ دوهمه او دریمه درجه ستر اقتصادي قدرتونه بلل کیږي ، په تاریخي لحاظ دچین او جاپان اړیکي دجنګ او سولې اوږده ماضي لري ، دې هیوادونو له وړو لانجو سربیره تراوسه دوه ځله ستر جنګونه سره کړي دي ، دغه راز یې ترمنځ اقتصادي راکړه ورکړه هم بې ساری ده همدا اوس ددې دوو هیوادونو ترمنځ د ۳۴۵ ملیاردو ډالرو په قیمت هرکال سوداګریزه راکړه ورکړه کیږي ، دجاپان ګڼ شمیر اتباع په چین کې په کارونو او اقتصادي پانګونو بوخت دي ، او په اقتصادي لحاظ دواړه هیوادونه له یوبل سره تروروستۍ کچې پېیلي دي.

خو له اقتصادي پېیلتیا سربیره دادواړه هیوادونه ترخپل منځ دبیلتون اساسي کرښې هم لري ، چین چې دسیمې ستر پوځي ځواک بلل کیږي ، دجاپان له کلیدي سیال شمالي کوریا دغه راز روسیې او ایران سره نږدې اړیکي لري ، چې د امریکایي پراختیا غوښتنې په وړاندې دیوه قطب ترکچې اسیایي جوړښت تشکیلوي ، او جاپان بیا دهمدې قطب دستر رقیب ( امریکا ) یو تحت الحمایه او ستراتیژیک معاهد هیواد دی ، چې سیمه ایز امنیت یې دامریکایانو لخوا تامینیږي .

په دې سربیره چینایان او جاپانیان ترخپل منځ تاریخي اودودیزې تربګنۍ هم لري ، جاپانیانو دنولسمې پیړۍ په وروستیو او دشلمې په پیل کې دچین ډیرې برخې په مکرر ډول اشغال کړې او هلته یې سخت جنایت او وژنې ترسره کړې ، دغه راز د دوهم نړیوال جنګ په وروستیو کلونو کې جاپانیانو په ارام سمندر دخپل واک دبشپړولو په

هڅه کې دچین تر واک لاندې ټولې جزیرې اشغال لومړی د ۱۹ پیړۍ په وروستیو کې اشغال کړ او بیا کړې ، هغه مهال چې جاپاني امپراطورۍ پوځي یې د دوهم نړیوال جنګ په مهال خپل بیرغ ورباندې برترې درلوده دچین په وړاندې یې خورا له عناده ودراوو ، خو کله چې امریکایانو ارام سمندر له ډک چلند درلود ، خو کله چې ددوهم جهاني جنګ چاپاني پوځ څخه تصفیه کاوو داټاپو یې هم ترې په پای کې دامریکالخوا دجاپان په ایټمي بمبار ونیو ، له اوس نه ځلوېښت کاله وړاندې د ډیرو سره جاپان تسلیم شو ، او دتل لپاره یې د هوایي او نورو سیمو غوندې امریکایي پوځ داټاپو جاپان ته سمندري ځواک له جوړولو توبه وایسته ، په سیمه وسپاره خو ملکیت یې لا هم دځواشخاصو بلل کیده کې پوځي موازنه سرچپه شوه ، له هغه راپدیخوا په اورسما دجاپان دخاورې برخه نه بلل کیده.

پوځی لحاظ چین په حاکمانه دریځ کې دی او په وړاندې یې تش لاس او په امریکایي پوځ متکي جاپان قرار لري.

په دې وروستیو کې دتوکیو حاکم چې یو سرسخته جاپانی ملتپال دی امریکا ته د سفر په مهال اعلان وکړ، چې دغه ټاپو به دهغه له شخصي

په داسې حال کې چې جاپان دنړۍ دریم ستر مالکانو څخه رانیسي او دجاپان دخاورې برخه به اقتصاد بلل کیږي ، او دودیز سیال چین یې نه یې وګرځوي ، دې خبرې چین چې له وړاندې یې یوازې داقتصادي پیاوړتیا دوهم مقام ترې اشغال ددې ټاپو دعوه درلوده ، او په تاریخي لحاظ یې کړی بلکې په سیمه کې دپراختیا غوښتنې دزیګنال داد چین برخه بلله ، عکس العمل ته مجبور کړ ، او په دود یې تازه تازه خپله لومړنۍ الوتک وړونکې کله چې جاپان دلانجمن ټاپو داستملاک لپاره رسما بیړۍ هم سمندر ته غورځولې ، همدې وضعیت متې رابډوهلې په چین کې دحکومت په دیکته ددواړو هیوادونو دواکمنو او اولسونو په مغزو کې دجاپان په خلاف توندې مظاهرې پیل شوې.

د دودیزې سیالۍ دپاللو چینجی په حرکت راوستی ، او دمناسباتو دخړپړتیا داوربلولو لپاره یې خس او خاشاک تیار کړی دي.

په دې لړ کې چین دټاپو دترلاسه کولو لپاره ۱۴ تنه فعالان ټاپو ته ولیږل چې دجاپاني سمندري ساتونکولخوا ونیول شول او له لږ ځنډ توقیف

کله چې خس او خاشاک تیار وي نو بیا یو وروسته بیرته پرېښودل شول ، تردې وروسته د کوچنی بڅرکی هم کولی شي ، لوی اور په غرغنډو داوړو هیوادونو ترمابین نزاع نوره هم ژوره شوه ، کړي ، دچین اوجاپان اوسنی اختلاف هم ظاهرا له جاپان چې ټاپو یې عملا په واک کې وه سیمې ته تر همداسې ورې خبرې راپورته شوی ، خو پټ اسباب ۲۰ پورې نورې کښتۍ ولیږلې ، او چین بیا دټاپو په یې ستر ، تاریخي او نفسیاتي دي.

شاوخوا اوبو کې دخپلو کښتیو په ګشت وګذار زیاتولو سره عکس العمل وښود.

دچین په جنوبي سمندر کې د ډېرو او پرېښو نه جوړ یو غیرمسکوني ټاپو دی ، چې ټول مساحت دجنجال داوج په مهال دچین په لراوبر کې یې ۷ کیلومتره مربع ته رسیږي ، داټاپوچې دجاپانیانو او جاپاني تاسیساتو په وړاندې سختې جاپانیان یې سنکاکو او چینایان یې دیاویو بولي ، مظاهرې وشوې چې ډیر ځله له تاوتریخوالي سره هم دارام سمندر دنورو ټاپوګانو غوندې جاپانیانو ملې وې ، ویل کیږي چې مظاهرې لومړی ځل

دحکومت او چینایي مطبوعاتو په اشارو پیل شوې ، چین چې معمولا عامه احتجاجونو ته اجازه نه ورکوي داخل یې خلکو ته اجازه ورکړه چې دجاپان په وړاندې خپل احساسات په ډاګه څرګند کړي ، چیني مظاهره کوونکو په هغو کارځایونو بریدونه وکړل چې جاپان په کې سرمایه ګذاري کړې ده ، دغه راز یې دجاپاني اموالو دتحریم غوښتنه وکړه .

ددې وضع دکنټرول لپاره دجاپان دبهرنیو چارو وزیر چین ته سفر وکړ ، په دې سره وضعیت تریوه حده نورمال شو ، خو لانجه لاهم په خپل حال پاته ده .

دچین او جاپان دلانجې په مهال دامریکا متحده ایالت هم چې دجاپان خوا یې نیولې له چین سره په لفظي شخړه واوښتل ، دامریکا دبهرنیو چارو وزیرې سیمې ته دسفر په مهال دختیځې او جنوب ختیځې اسیا له هیوادونو وغوښتل چې دچیني پراختیا غوښتنې په مقابل کې ګډ دریځ غوره کړي ، دا څرګندونې چینایي چارواکو تقبیح کړې ، او امریکایي دسیمیزو لانجو په پیداکولو تورنه کړه .

کتونکي باور لري ، چې دچین او جاپان سمندري لانجې ترټولو زیات امریکایي چارواکو ته سرخوږی وراچولی، له یوې خوا دواړه هیوادونه دخپل ملي ګرا احساس له مخې حاضر نه دي چې له غوره کړي دریځ پرشا شي ، چین په پوځي او اقتصادي اعتبار ځان په ښه دریځ کې بولي نو ځکه حاضر نه دی چې په دې لانجه کې تنزل وکړي ، او جاپان بیا لانجمنه سیمه دخپل ملي حاکمیت برخه بولي ، څرنګه چې دجاپان ملي حاکمیت دامریکاله خوا تضمین شوی نو ځکه به نهایتا په دې مسئله کې امریکا او چین سره مخامخ کیږي ، په داسې حال کې چې په لانجو کې ډوبه امریکا نه غواړي دارام سمندر غونډې په یوه سمندري ستراتیژیکه سیمه کې ځان ته بله لانجه وګوري .







عمومي باور دادی چې امریکا به کله هم ونه غواړي ، دجاپان دملي حاکمیت دساتلو لپاره له چین سره په ګریوان کې ولویږي ، دا هغه حقیقت دی چې اوس جاپانیانو هم درک کړی دی ، دکتونکو په نظر جاپان اوس په خپل ستراتیژیک معاهد ( امریکا ) باندې پخواني باور له لاسه ورکړی له همدې امله په دې وروستیو کې جاپان غواړي دخپلې دفاعي لپاره خپل ملي مؤسسات پیاوړي کړي ، په وروستیو کلونو کې جاپان خپل د ملي دفاع آژانس په دفاع وزارت اړولی دی ، دغه راز یې دهوایي او سمندري ځواک دجوړولو لپاره هم هڅې پیل کړې دي ، جاپانیان نیت لري دخپل اساسي قانون هغه ماده تعدیل کړي چې جاپان له پوځیوالي څخه راګرځوي .

جاپان له څو لسیزو تجربو وروسته دامریکایي ستراتیژیکي دروغجنې ملګرتیا له منت څخه اوړي سپکوي او غواړي خپله دفاعي توانمندي رامنځته کړي ، مګر دحامد کرزي په مشرۍ دکابل چارواکي په عین وخت کې ځان په امریکا سپاري ، او ستراتیژیک تړونونو ورسره امضاء کوي ، له دې څخه ښکاري چې دغه تکونکرات نمایان تروروستۍ کچې دنړیوال او امریکایي وضعیت له درک څخه عاجزه دي ، نو ځکه په نړیدلي پاڼ تکیه کوي.

# دسوریې مذهب اوو ګړي !

ژباړه : خبیر احمد

سوریه که څه هم یو اسلامي هیواد دی ،ولې دد غه هیواد په واک پنجه وهونکو په رسمي ډول دکوم دین اعلان ندی کړی ، که څه هم د اهل سنت پیروان دد غه هیواد لوی اکثریت او نفوس جوړوي

څه د پاسه ۴۰ فیصده سني مسلمانان د سوریې هیواد په ښارونو کې استوګنه لري نور پاتې سنیان د نوموړي هیواد په لري پرتو سیمو کې میشته دي

په همدې ډول سوریه ۱۲ فیصده اهل تشیع ته منسوب ( علوی ) مذهبه خلک لري ، علویان ډیری په لاذقیه یانې د سوریې په شمال مغربي سیمو کې او سي چې لړی یې د مدیترانی سواحلو ته رسیږي

سوریه مسیحیان هم لري چې عرب نژاده دي او دیونان د ارتدوکس او کاتولیکي کلیسا پیروان دي چې د دغه هیواد په حلب ښار کې اوسیږي

دغه ډول په سلوکې ۳ فیصده د ( دروزي ) فرقې پیروان هم شته ،دوی که څه هم ځانونه مسلمانان بولي خو عقیده یې له اسلام سره هیڅکله اړخ نلګوي ،دوی د ( الحاکم خلیفه فاطمی ) عبادت کونکي دي چې په وینایې په ۱۰۲۱ م تری تم شوی

دروزیان ، عقیده لري چې العیاذ بالله الله تعالی په الحاکم کې تجسم کړی او باور لري چې الحاکم به بیا جهان ته راځي او پیدا کیږي به ،دروزیان زیات د سوریې په غرنیو سیمو کې ( جبل العرب ) کې میشت دي

دغه راز په سوریه کې اسماعیله فرقه چې د اهل تشیع یو ښاخ دی موجودیت لري ،دوی د نوموړي هیواد په حمص او حلب کې اوسي ،په همدې توګه یو وړوکی جمعیت یهودیان هم په سوریې کې شته چې په دمشق او حلب کې استوګنه لري

دیادولو وړده چې د سوریې په کرد میشتو برخو کې ( یزیدي ) قبیله هم موجودیت لري چې عقیده یې له یهودیت او مسیحیت نه سرچینه اخلي ویل کیږي چې دغه قبیله د عراق له پولي سره نیږدې پرته ده چې ټولټال ۱۵ زره کورنی شمیرل شوي

په مجموع کې سوریه ۲۴ میلونه نفوس لري چې ۷۴ فیصده یې سنیان ، ۱۲ یې علویان ( اثنی عشری اسماعیله ) ۱۰ فیصده یې مسیحیان او ۳ فیصده یې درویزیان او ۱ یې متفرق بلل کیږي ،د سوریې ۹۰ فیصده وګړي په عربي خبري کوي ، ۹ فیصده یې په کردي او ۱ فیصدي یې په ترکمني ګړیږي

د سوریې برحاله واکمني او د چارو واګې دبشار اسد خاندان پورې تعلق لري چې هغه بیا د شیعه ( علوي ) فرقې پیرو دي

# دبرتانیې محاکم



## دظلم او بې انصافۍ پر لور

شهیدزوی

داد ۱۹۹۸م کال داکتوبر خبره ده ، برتانوي دولت دهسپانې په غوښتنه دلاطیني امریکا دچلي پخواني دیکتاتور ,,آکستو پنوشي،، دبشریت ضد جنایتونو دارتکاب په جرم په لندن کې ونیولو ترڅو په چلي کې دده په لاس دګڼو هسپانویانو دوژل کېدو له امله هسپانې ته دمحاکمې لپاره وروسپارل شي.

داروپا مبې ځل وچې دیو هېواد پخواني مشر دخپل هېواد نه بېرون دهغو جرمونو له کبله نیول کېدلو دکومو تړاو چې دهغه دخپل هېواد سره وي.

دګڼ شمېر اروپایي هېوادونو قاضیانو دنړیوال عدل دفراخه واک او اختیار په پام کې نیولو سره د,,آکستو پنوشي،، نیول تائید کړي او پرځای عمل یې ګڼلی و.

پنوشي د۱۹۷۳ نه تر ۱۹۹۰ پورې دچلي مطلق العنان ولسمشر و ، پرهغه داتور وچې دخپلې واکمنۍ پر مهال یې د۳ نیم زرو نه زیات بې ګناه انسانان وژلي دي ، د ۸ زرو نه زیات یې داوږدو مودو لپاره نظر کړي او دکوچنیانو او مېرمنو په شمول یې د۳۰ نه زیات سکنجه کړېدي.

ددې ستروجرمونو دصحت په باره کې هیڅ هم شک نه درلودلو او دچلي دولت یې هم تردید نه وکړی خو بیا هم هسپانې ته دپنوشي دسپارلو یا نه سپارلو په باره کې دبرتانې په محاکمو کې ۱۲میاشتې بحثونه روان وو چې دسپارلو په اړه یې کوم اتفاق رامنځته نه شو.

امریکا دپنوشي دمحاکمې سخته مخالفه وه او په دې مخالفت کې ورسره دبرتانې پخوانۍ لومړۍ وزیره مارګریټ تاچر هم ملګرې وه ځکه چې دارجنټینا پرضد دفاکلینډ په جنګ کې پنوشي دبرتانیې فوځي مرسته کړې وه.

تاچر او دامریکا ولسمشر بش دبرتانې ددولت نه وغوښتل چې پنوشي دې هسپانې ته نه سپارل کېږي بلکې له زندان دې آزاد او خپل هېواد چلي ته دې واستول شي چې بیا همداسې وشوه ، دهغه مهال دکورنیو چارو وزیر جیکستیرا د۲۰۰۰م په جنورۍ کې دا پرېکړه اعلان کړه چې دپنوشي روغتیایي حالت د ډاډ وړ ندی نو ځکه یې هسپانې ته نه شو استولای بلکې خپل هېواد ته یې داستولو لپاره له زندان نه آزادوو.

هماغه وو چې پنوشی نه په برتانې کې محاکمه شو او نه هم هسپانې ته ومحاکمې لپاره واستول

شوبلکې د دې اعلان نه پس آزاد او خپل هېواد ته بېرته په عزت واستول شو

نو ظالم دیکتاتور پنوشې چې دګڼ شمېر بې ګناه انسانانو دوژلو او سکنجه کولو ثبوت هم وربانـدې و او له دې امله بې شکه قانوني مجرم و خو چې امریکا دهغه محاکمه نه غوښتله نو نه خو هغه په برتانې کې محاکمه شو او نه هم دمحاکمې لپاره هسپانې ته واستول شو خو په همدې برتانې کې بابراحمد نومي یو ۳۸ کلن پاکستاني نژاده برتانوی ځوان چې نه وربانـدې په برتانې یا دبرتانې نه بېرون دکوم جرم ثبوت شته او نه یې هم دکوم جرم دوسېه په محاکمو کې شتون لري چې دنړۍ د یو قانون له مخې یې هم محاکمه کول یا دمحاکمې لپاره کوم هېواد ته سپارل جواز نه درلودلو خو بیا یې هم دبرتانې محاکمو امریکا ته دور سپارلو حکم وکړ چې سمدستي انتقال هم شو ځکه چې امریکا دهغه غوښتنه کوله.

دبرتانې محاکمو دا پوښتنه هم اړینه ونه ګڼله چې مونږ یو هېوادوال بل هېواد ته سپارو آیا دهغه بل هېواد له لورې پرده دلګېدلو تورونو په اړه کوم کوچنی ثبوت وړاندې کړای شوی یا وړاندې کېدای شي؟

په برتانې کې خلک دې خبرې ډېر حیران کړي چې بابراحمد چې نه یې په برتانې کې یا امریکا کې څوک وژلی، نه یې څوک ټپي کړی، نه یې چاته تکلیف رسولی او نه هم وربانـدې دبشري حقوقو دنقض کوم تورشته یوازې له دې امله چې په خپلې ویب پاڼې کې یې دروسانو په مقابل کې دچیچنایانو او دامریکایي فوځیانو په مقابل کې یې دطالبانو جنګ دآزادۍ دترلاسه کولو لپاره یو حق جنګ باله او اخلاقي حمایت یې ترې کاوه ولې امریکا ته وسپارل شو؟ او ولې له تېرو ۸ کلونو راهیسې په برتانې کې بندي و؟ او دا چې دامریکا دخوشالولو لپاره دبرتانې دولت ولې دخپلو اتباعو حقوق تر پښو لاندې کوي؟

بابر احمد په لندن کې زېږېدلی، راستر شوی او همدلته یې لوړې زدکړې ترسره کړېدي، دلندن په امپیریل پوهنتون کې یې دانجنرۍ پوهنځی لوستی او کله چې په ۲۰۰۴ کې دبرتانې دولت نیولو نو دهمدې اوس کالج د کمپیوټر په څانګه کې یې کارکولو، پلاریې متقاعد ملکي افسردی او موریې دساینسي علومو متقاعده استاذه ده.

پر بابراحمد دنیولو پر مهال او نه هم تر اوسه کوم جرم ثابت شوی بس یوازې دامریکا په حکم نیول شوی او اذیت او تکلیفونو نه ډک تېر ۸ کلونه یې په زندان کې تېر کړل، دبرتانې دولت هم په دې خبره اعتراف کوي چې پر بابراحمد هیڅ کوم داسې جرم نه دی ثابت شوی چې له امله یې هغه په برتانې کې محاکمه شوی وای خو امریکا یې شدیده غوښتنه کوله نو ورو سپارل شو ځکه چې ددواړو هېوادونو ترمنځ دمجرمینو دتبادلې تړون شتون لري.

دا هم ښه په زړه پورې خبره ده چې برتانې یا امریکا یو یې په جرم ثابتولو نه دي توانېدلی خو مجرم یې بولي او برتانیا وایي چې امریکا ته یې ځکه سپارلی چې ورسره دمجرمینو دتبادلې تړون لري؟!

هو! دامریکا نه دځان جاروونکي تړونې بلیر دواکمنۍ پر مهال دامریکا او برتانې ترمنځ د مجرمینو یانې سوچه مسلمانانو دتبادلې داسې تړون رامنځته شو چې له مخې یې هریو په بل هېواد کې کوم مسلمان تروریست وګڼي او ورځنې یې وغواړي نو غوښتونکي هېواد ته به بې له دې چې څه ثبوت وړاندې کړي دامسلمان ورسپارل کېږي نو ځکه

دبرتانې محاکموبې له دې چې دامریکانه کوم ثبوت وغواړي بابراحمد يې وروسپارلو.

دبابراحمد موراوپلار ددې پرېکړې پرضد داروپايي اتحاد په محاکموکې اوازپورته کړخوترې ناهيلي راستانه شول.

زندان کې دبابراحمد تېر ۸ کلونه هم داذيت اوتکليف نه ډک وو خوچې امريکا يې په ډېره کلکه غوښتنه کوله نو داسې ځنې برېښې چې به يې زندان دبرتانې په پرتله ډېرد تکليفونوډک وي، اوهسې هم دامريکا محاکم دترورېست په نوم مسلمانانوته دسختو سزاګانوپه تعينولوکې ډېرورانده اوښه زيات بدنام دي.

بابراحمد دامريکا په ،، کنکټي کيټ،، کې ،، نيوهيون ،، محاکموته وړاندی شويدی اوددې خبرې قوي خطردی چې که نوموړومحاکمو ورته سزا تعين کړه نود ،، کولوراډو ،، بدنام زندان ،،سپرمکس ،، ته به واستول شي.

دا زندان په امريکا کې په ،، پاک جهنم ،، شهرت لري، په دې زندان کې دبنديانو لپاره جوړې شوې کوټې سترې کوټې دي، خوراک ځښاک يې مناسب دی، بشري ضرورتونه پکې پوره دي خوپکې هرزنداني دبل نه بېخي جدا وي اويو زنداني په شپه او ورځ کې يوائې ديوې دقيقې لپاره دزندان دعملې سره رابطه ټينګولی شي نورټوله شپه او ورځ ديوائيتوب په جهنم کې سوځېږي.

دبرتانې دولت دبابراحمد سره يوځای دلندن د ،،فنسبري،، مسجد پخوانی امام ابوحمزه هم امريکاته وروسپارلو.

ابوحمزه په ۱۹۷۹ م کې ديو محصل په صفت دمصرنه برتانې ته راغلی اوبرايټن پوهنتون کې يې دانجنرۍ پوهنځی لوستی و، هغه دروسانو پرضد د افغانستان جهاد کې ګډون کړی و چې دبم جوړولو په يوې عمليې کې پرې خپل بم چاودلی اويوه سترګه اودواړه لاسونه يې پکې له منځه تللي وو، څه موده بيا دبوسنيا دمسلمانانو سره اوږه په اوږه دوحشي سربانو پرضد هم جنګېدلی و، په برتانې کې دشريعت دنفاذ اود جهاد نه دحمايت په اړه دهغه د نسبتاً تېزو بيانېوو له امله هغه په ټولې برتانې کې ډېرشهرت موندلی، دهغه په اړه دا هم مشهوره ده چې دامريکا مخالفويمني مجاهدينو حمايت کوي.

خوهغه ته دبرتانې ددولت دمتوجې کېدلو اصل لامل دهغه تېزې بيانې وې اوهمدا تېزې بيانې يې دنيولو اصل لامل وګرځېد، امريکاته دسپارل کېدو نه پس د بي بي سي يوخبرنګار ،، فرينک کارډنر ،، وويل چې په يو پروګرام کې راته ملکې الزبت وويل ،، څه حيرانه يم چې ابوحمزه تر اوسه ولې نه دی نيول شوی ؟

دابوحمزه دنيول کېدونه پس په ۲۰۰۶ م کې هغه په ۷ کاله بند محکوم شو چې ورسره يوځای امريکا پرهغه دطالبانو سره دمالي مرستو، دامريکا په اوريګن کې مسلمانانوته دجهادي زدکړو لپاره دځای برابرولو اوپه يمن کې دلويديځوالو سيلانيانو دتښتولو او وژلو تورونه ولګول.

۷ کلونه هغه دبرتانې په محاکموکې ددې تورونو مقابله وکړه اوچې ګټه يې ونکړه نوبيا يې داروپايي اتحاد محاکموته رجوع وکړه خودلته له ناهيلۍ پرته هغه هيڅ ونه ليدل، تردې چې دبرتانې محاکمو امريکاته دهغه دسپارلو پرېکړه وکړه اودبابراحمد سره يوځای وروسپارل شو.

برتانې ددوئ دواړو سره يوځای ۳ نورتنان هريوطلحه احسن، خالد الفواض اوعدل عبدالباری هم

امریکا ته وسپارل ، پرعادل عبدالباري اوخالد الفواض داتوردي چې په ۱۹۹۸م کې یې په نیروبي او دارالسلام کې دامریکاپرسفارتونو په شویو بریدونو کې لاس و او دطلحه احسن جرم دادی چې په ۹۰ یمې لسیزې کې یې دشیخ اسامه سره ملګرتیا وه.

امریکاته دبابر احمد او طلحه احسن دورسپارلو پرضد مسلم کاونسل آف برتین نومي د مسلمانانو تنظیم شدید احتجاج وکړ ، دنوموړي تنظیم له لورې په یوخپورشوي بیان کې راغلي چې ،، په برتانې کې دبشري حقوقو اومدني ازادۍ دعلمبردارانو لپاره دا یوه توره ورځ ده چې برتانویان پر ځای ددې چې په برتانې کې محاکمه شي اوس په امریکاکې محاکمه کېږي ،،

نوموړي تنظیم اوباماته خط هم لیکلی وچې دطلحه احسن اوبابراحمد له غوښتنې دې امریکا تېره شي خو هیڅ جواب رانغلو.

ګڼ شمېر برتانویان په دې کار له دې امله خفه دي چې دبرتانې په جمهوري نظام کې دیولکوخلوښت زروهغو تنانو درایو احترام ونه شو کومو چې په یوې محضرنامې ددې لپاره امضاګانې کړې وې چې دبابر احمد په موضوع دې دبرتانې په پارلمان کې بحث وشي.

دبابراحمد مور، پلار اودوستانو ویلي چې دبرتانې دمحاکمو په دې اقدام باید ددې محاکمو دعدل فاتحه خواني وشي ، مطبوعاتو ته ګڼوبرتانویانو ویلي چې په دې اقدام دبرتانوي محاکمو دانصاف جنازه ووتله ،،

## د قیامت د غمونو څخه نجات (الحدیث)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: که څوک په دې خوشحاله کیږي چې الله جل جلاله دقیامت د ورځې د مصیبتونو اولویولویو غمونو څخه نجات ورکړي نو دی دې هغه چا ته چې تنګ لاسی وي ساه ورکوي (په پور او قرض کې دې مهلت ورکوي) اویا دې پوریو څه وروبخښي. رواه مسلم

## د قرانکریم د حافظ درجه (الحدیث)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې (د قیامت په ورځ به) د قران حافظ ته وویل سي چې قران لوله او ته (د جنت لوړو درجو ته) پورته کیږه، او قران په ترتیل (ورو ورو) سره وایه لکه څه ډول چې دې په دنیاکې په ترتیل (ګراره ګراره) تلاوت کاوه ځکه ستا مقام د هغه آخري ایت سره دی کوم چې ته یې لولې. رواه احمد و ابوداود

## الله پر چا رحمت کوي؟ (الحدیث)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: الله پر هغه چا نه رحمیږي چې هغه پر خلکو نه رحمیږي. متفق علیه

## خپل سوغات بیرته اخیستل (الحدیث)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: څوک چې یو چا ته هبه او سوغات ورکړي او بیا بیرته خپل سوغات ځني اخلي نو دده مثال دا ډول دی لکه یو سپی چې قی ووهي او بیا بیره خپل قی خوري. او موږ مؤمنانو ته دا ناوړه صفت نه ښته. رواه البخاري

# بزرگداشت عید طاعت و بندگی به سبک غربی

جا دارد یکبار دیگر فرا رسیدن عید سعید قربان، عید طاعت و بندگی، عید ایثار، عید قربانی کردن نفس اماره را به همه مسلمانان جهان بخصوص شما هموطنان عزیز در هر کجا که هستید تبریک و تهنیت عرض کنیم.

بزرگداشت این روز از آیین های کهن و اسلامی است که از دیر باز مردم افغانستان توجه بسیار ویژه ای به آن داشته و دارند که برخی از رسم و رسوم این عید در خبرهای قبلی نشر شد.

اما متاسفانه این روزها عده ای به ظاهر روشنفکر و از غرب برگشته سعی در بدعت گذاریهای غلطی در آداب فرهنگی و اسلامی جامعه دارند که نه تنها هیچ نسبتی با رسوم اسلامی ما نداشته بلکه نشانه های ملموس یک پیشروی غربی در سبک زندگی اسلامی و ملی جامعه ماست.

تا آنجایی که ذهن ما یاری می کند و بزرگان برای ما تعریف کردند عید قربان، عید مبارکی است که از آن به عید طاعت و بندگی یاد می شود. عیدی که در آن حضرت ابراهیم خلیل علیه السلام از سخت ترین امتحانات سربلند بیرون شد، عیدی که در آن حضرت موسی علیه السلام به میقات ذات اقدس باری تعالی شتافت و کلیم الله شد.

یکی از بهترین جلوه های به یاد ماندنی این روز، برگزاری نماز عید قربان است که نشان همبستگی و اتحاد ملت می باشد و مردم افغانستان نیز همانند سایر مسلمانان با حضور در مساجد نماز عید قربان را با تشکیل صف های به هم فشرده، برگزار می کنند.

عید قربان را فرصتی برای تجدید دوستی ها و رفع کدورتها می دانند و بعد از بجا آوردن نماز، ابتدا به خانه افرادی می‌روند که اعضای خانواده خود را از دست داده‌اند و برای صاحبان عزا آرزوی صبر می‌کنند. سپس برای دید و بازدید به همراه خانواده خود به خانه خویشان و دوستان البته ابتدا بزرگان قوم می‌روند و سنت زیبای صله رحم را به نیکوترین وجه به انجام می رسانند..

این آن چیزی است که ما تاکنون شاهد آن بودیم. اما متاسفانه امسال رسانه های تصویری و برخی محافل به اصطلاح فرهنگی کشور به گونه ای دیگر رفتار کردند. از روز اول عید یا بهتر بگوییم از شب نهم ذی الحجه دهها مراسم کانسرت به پاس بزرگداشت این عید سعید برگزار کردند.

اکثر تلویزیون های خصوصی و دولتی به بهانه شادی مردم در روز عید، تمام برنامه های خود را اختصاص به موسیقی، خواندن و مجالس کانسرت گذراندند که اگر کسی نا آشنا به این شبکه ها نگاه می کرد، اصلا باورش نمی شد که این تلویزیونها مربوط به یک کشور جمهوری اسلامی باشد.

سوء تفاهم پیش نیاید. ما هیچ مشکلی با پخش برنامه های شاد و خنده آور برای مردم در روز عید و دیگر روزها نداریم. ولی انصاف مطلب این است که جامعه ما به سمت یک غرب زدگی شدید پیش می رود ، کانسرتهای غربی، رقص زن و مرد در مجالس علنی، کشف حجاب توسط برخی خانمهای محترمه در رسانه های ملی، ترغیب شدید جوانان به سمت شغل خوانندگی و رقاصی که باعث دلزدگی آنان از کارهای اجتماعی و سیاسی شده است.

شما منصفانه قضاوت کنید. آیا همین گونه نیست؟ آیا مردم افغانستان در دامت غرب نیفتادند ؟ پخش برنامه های شاد حق ملتی است که عید دارند ، اما نه برنامه هایی که مخالف و معارض با دستورات و شئونات اسلامی است.

هرچند باید گفت این سیاست غرب است. انگلیسها معتقدند که اگر بخواهی بر یک ملت حکمرانی کنی، بعد از ایجاد تفرقه ابتدا باید فرهنگ ملی آنان را از آنها بگیری تا دیگر خود را متعلق و پایبند به آن نظام و دولت ندادند. وقتی برای جوانی پایبندی به اصول اسلامی مطرح نباشد و برای خوشگذارنی دوران جوانی و برای شهرت یافتن دست به هر اقدام خلاف شرعی بزنند ، دیگر غرور ملی برای وی باقی نخواهد ماند.

این مطلب را از آن جهت متذکر شدیم که دیری نخواهد گذشت که شاهد باشیم مراسم بزرگداشت شهدا و بزرگان نیز با موسیقی و به سبک غربی برگزار گردد. به جای قرائت قران و انجام آداب مذهبی سفارش شده، برای شادی روح مرحومان با ساز و آواز و آلات موسیقی از آنان یاد کنند یا به سبک غربیها برای شادی روح اموات یک دقیقه سکوت کنند.

و متاسفانه این است حکایت جامعه ای که بدون هیچ تفکری تحت تاثیر تهاجم فرهنگی غرب واقع می شود و انگار قرار نیست که مسئولین کشور تهاجم شوم فرهنگی و ترویج سبک زندگی غربی در جامعه را که توسط دشمنان و با استعانت برخی انسان های ساده لوح و بعضا معاند صورت می گیرد را جدی بگیرند.

هرچند برای برخی ها فرقی نمی کنند که ناموس آنها حجاب داشته باشد یا نه؟ دختر آن در مراسم رقص مختلط شرکت کند یا نه؟ فرزند آنها یک جوان سالم تحصیل کرده بار آید یا یک خواننده مطرب؟

## مورکی

کله چي وکړي څوک دوعا ماته رایاده شي مور
چیرته چي ووینم ښکلا ماته را یاده شي مور

کله چي مور سره ماشوم په پالي پالي درومي
له خولې مي اوځي بسم الله ماته رایاده شي مور

لکه یتیم دېوال ته کینمه ډیر وژاړمه
پردې وطن کي یم تنها ماته رایاده شي مور

ها نصیحت هغه خبري په کتاب کي لولم
هغې وې کړي لا پخوا ماته رایاده شي مور

سید په شعر کي د مورکۍ سره خواله وکړله
خکه خو شین شوم له ژړا ماته رایاده شي مور

# دامریکا وروسته دنړۍ ستر ځواک ...!

( بشیر )

په وروستیو څو کلو کې ددې موضوع پر سر خورا ښه او تاوده بحثونه وشول چې د امریکا له زوال وروسته به څوک دنړۍ لوی ځواک وي ؟ په نړۍ زیاتره خلک دې لړ کې دچین نوم اخلي په اندویې یوائې هغه ددې وړتیا به ولري چې له امریکا وروسته ځان دنړۍ دلوی ځواک په حیث راڅرګند کړي...

تردې پورې چې نن سبا خپله د چین دننه هم چیني سیاستوالو او چارواکیو په دې اړه دځانګړو بحثونو ،شننو او تبصرو کولو لړۍ پیل کړې...او دنړۍ له بېلابیلو هیوادو نه سیاسي ، پوځي او اقتصادي کارپوهان چین ته ورغواړي .... په زیاته علاقمندۍ دهغوئ سیاسي تحلیلونه او شنني اوري... په ځانګړې توګه زیات تمرکز په دې موضوع کوي "چې چین ته دنړیوال ځوک کېدو په صورت کې څه ډول بهرنۍ تګلاره غوره کول پکار دي ؟"

ددې ټولو باوجود دیاهم پوره باوري نده چې خامخادې چین نړیوال ځواک وګرځي ... ولې اوس مهال دامریکا او چین ترمنځ یوه کمزوري موازنه په لاندې ډول ده ...

امریکا هغه یوائینی ځواک دی چې سمندر کې یوولس طیاره وړونکي جنګي بیړۍ لري... په مقابل کې یې بیا چین اوس یوه جنګي بیړۍ سمندرته ښکته کړې ... ددې څخه علاوه په نړیوال سیاست کې دچین ونډه اورول هم دامریکا په پرتله څوواره کم دی

یوائې په اقتصادي میدان کې ریښتیاهم ددې تمه شته چې چین دې دنړۍ لوی ځواک وګرځي ... په دې دسې باورهم راځي ، ولې اوس مهال داقتصادي حجم له پلوه چین دامریکا یې اقتصاد نیمایې جوړوي ... دیوې اندازې له مخې که چین هرکال خپله کلنۍ اقتصادي وده اووه سلنه هدف نه وای ګرځولي نوشوني وه چې په ۲۰۱۸ز کې به چین په امریکا

داقتصادي پلوه برلاسي ترلاسه کړي وه... البته ددي پرته په ساينس، ټيکنالوژۍ اودژوند په نورو معيارونو کې چين له امريکا څخه وروسته پاتي دی

اوس پوښتنه داده چې دلوی ځواک جوړيدو په صورت کې به چين دامريکا پشان وي؟ دسياسي چارو شنونکو په وينا: دا يو بې ځايه سوچ دی، ولې چين ديمکراتيک هيواد ندی، هلته کمونست ګوند واکمن دی، له دي وجي په اړه يې هر څه ويل به له وخته وړاندي وي ....

داتمه درلودل ندي پکار چې چين به هم دامريکا پشان وي!! بلکې ضروربه چين ځانته جلا بڼه اورنګ ولري اونه دا انديښنه پرځای ده چې چين به د امريکا نه هم ډيربدوي ....

چين به څنګ ځانته جلا بڼه ولري؟

ولې دداوړو تاريخ جلا دی بل دچين لخواه دافريقايې هيوادو سره دسوداګرۍ اوپانګوني سره زياته علاقمندي ښودل ددي ښکارندويه دی چې هرومرو چين دکوم نوي ډول نظام ايډيا په پام کې لري .

په دي اړه دتاريخ له پلوه دامعلومول پکاردي، چې چين په ماضي کې له خپل هيواده بيرون يو هيوادا وسيمه هم خپله مستعمره نده ګرځولي... او په نړۍ دواکمنۍ کولو ذهنيت دغربيت زيږنده دی... او جاپان هم څه موده دا ذهنيت درلود...

يو وخت چين کولی شول چې په سويل ختيځه اسيا کې يې خپل نفوذ زيات کړی وه لکه په ۱۵مه پيړۍ کې ور سره داروپا په مقابل کې يوه لويه جنګې بيړۍ وه، خو داکاريې ونه کړو، بل داهم نشي ويل کېدای چې دچين له لاسه ګاونډيان په اذيت شوي وي، يايې پخپلو ګاونډيو ددي لپاره چې ورباندي څو پيړۍ حکومت وکړي يرغل کړی وي، ولې چين تل غوښتي

چې هغه يوازې پخپل هيواد کې ژوند وکړي ....داځکه چې چينايان دا باورلري: چې دوئ دځمکنی کري په مرکزکې ژوند کوي، او دوئ دبشريت ترټولوغوره ډول دي ....

چين ترډيره پخپلو تاريخي برياوو وياړي، ددی ترڅنګ داروپا اوچين ترمنځ ځيني ګڼ خصوصيات هم شته دي، هغه دا دواړه باورلري چې ديوا وبل لپاره مثال دي، خود عمل بڼه يې له يوبل نه جلا ده... اروپا او وروسته امريکا په اند: نړۍ کې خپل ځواک زياتول پکار دي، په خاصه توګه په ۱۹مه او ۲۰مې پيړۍ ترنيمايې يې دنړۍ په يوه لويه برخه واکمني کړي....

خو چينايانو تل پخپل هيوا د کې ژوند کړی دی، دچين "ژهينګ "د ۱۴۰۵ نه تر ۱۴۳۵ پوري دچين په شرقي اوجنوبي سمندرونو کې سفرونه کړي دي، خو هغه هيڅ يو هيواد په نښه کړی ندی نه يې په کوم هيواد کې مستقل تم شوی دی .

ددي برعکس فرانسه اوبريتانيه دخپلو هغو اتلانو ورځي اوجشنونه لمانځي کومو چې په ازادو ولسونو يرغلونه کړي دي...په دي وياړيې پر لارو او کوڅو کې دهغوئ مجسمي ودرولي دي ....

داچې چين پخپله دنړۍ يوپراخ لوی هيواددی له دي وجې هم نه غواړي په نورو هيوادو يرغل وکړي، هغه تل پخپل هيواد حکومت کول چيلنج وي... همدا وجه وه چې دچين ټول پخواني واکمن به هروخت به ددچين کنترولولو په اړه انديښمن ول... خو ددي ترڅنګ چې چين ددي لپاره چې دنړۍ لوی ځواک شي ډيربې صبره هم ندی...

# فدايي بريدونه ولې حرام دي؟

محمد زمحشري

د طالبانو د غلچکي او د خرپ او ترپ جګړو امريکايانو او د هغوی د لاسپوڅو له غم څخه د څخه پرته، صليبيانو د طالبانو د فدايي حملو له کبله خلاصولو دي لړۍ ته تر ټولو دمخه استاد سياف ميدان زياته مرګ ژوبله وليده، زيات مالي او ځاني تاوانونه ته ودانګل او فدايي حملې يې ناجائزه اعلان کړې او ورته واوښتو، صليبيانو له هري طريقې څخه کار زياته يې کړه چې فدايي حمله يو غير شرعي عمل دی. واخست تر څو د فدايانو حملې شنډې کړي، ولې پرې هغه د خپلو خبرو په اوږدو کې په هغه مفتيانو نيوکې ونه توانيدل، نو دوی له بلې حربې څخه کار واخست، وکړې، چې فدايان فدايي حملو ته چمتو کوي او د جواز خپلو لاسپوڅو عالمانو ته يې اشاره وکړه، چې د قرآن او حکم ورکوي، د استاد سياف له ځرګندونو څخه لږ وخت حديثونو په رڼا کې دا عمل ناجائز ثابت کړي، ګڼو غير وروسته يوشميرپاکستاني بريلوي عالمانو هم د فدايي مشهور عالمانو د دوی په اشاره هڅه وکړه، چې فدايي حملو لړۍ نا جائزه او غير شرعي اعلان کړه او دا دی د حمله غير شرعي او ناجائزه ثابته کړي، په دې موخه يې حج د مراسمو په اوږدو کې د عرفات په مبارکه ورځ د کتابونه وليکل، دوی هڅه وکړه چې ځان وژنه او د بې سعودي عرب رسمي مفتي شيخ عبدالعزيز چې د شيخ ګناه خلکو په منځ کې انتحاري حمله له فدايي يا محمد بن عبدالوهاب له کورنۍ څخه دی، زياته کړه استشهادي حملې سره، چې په يرغلګر کافرانو تر سره چې فدايي حملې غير شرعي دي او له کنړ څخه ځينو کيږي، يو شان وګڼي او يو شان د عدم جواز حکم کسانو د نومورې د فتوا پخلی کړی او هوډ يې کړی چې ورکړي، خو د دوی په ضد کې د حق عالمانو بيا د په صليبيانو له فدايي حملو څخه به لاس په سر کيږي.

فدايي حملې د جواز کتابونه او دلائل وليکل او دا چې په يرغلګرو باندي د فدايي شهات تر ټولو شهادتونو غوره شهادت دی، او د بې ګناه خلکو وژنه که د ځان وژني يا په بله ذريعه وي، غير مشروع عمل دی، چې له دې سره د عدم جواز د کتابونو ارزښت له منځه لاړ، کله چې د امريکايانو هڅې له ناکامي سره مخ شوې، نو هغوی د اسلامي هيوادونو ځينو مشهورو څيرو ته مراجعه وکړه، تر څو هغوی فدايي حملې ناجائزه اعلان کړي او صليبيان له دې غم څخه وژغوري. د

سوال پيدا کيږي، چې د دري هيوادونو مشهوري څيري څرنګه دې موضوع ته دومره اهميت ورکوي، په يو وخت کې پرلپسې فدايان غندي او فدايي حملې غير شرعي اعلانوي.

په دې کې شک نشته چې د روسي ښکيلاک تر را پرځيدو څخه وروسته د ټولې غربي نړۍ د سترګو ازغی يوازې مسلمانان پاتي شوو، نو ځکه غربيانو د سرې او ګرمې جګړې مخ د مسلمانانو په لور واړول،

دوی د اسلامي شعائرو په له منځه وړلو لاس پورې کړو، وکړو خو ورسره په څنګ کې یې په انفرادي توګه په کم
د مسلمانانو په منځ کې یې په ګڼ شمېر سیاسي او تعداد کې فدایي حملې هم پیل کړې، خو کله چې غربي
مذهبي تنظیمونه را منځته کړو، تر څو د ضرورت په نړۍ په غیر اخلاقي عمل لاس پورې کړو، د قرآن عظیم
مهال که صلیبیان پر مسلمان هیواد نظامي یرغل کول الشان او د رسول الله (ص) د توهین او بې عزتي هڅه یې
غواړي، نو د هغه هیواد په داخل کې د دوی لاسپوڅي وکړه، نو د ګڼو افغانانو وینه په جوش راغله او طالبانو په
سیاسي تنظیمونه ورته ښه راغلاست وایي، لاسپوڅي ډله ایزه توګه د قرآن عظیم الشان او د رسول الله(ص) د بې
مذهبي تنظیمونه یا په نوره اسلامي نړۍ کې د دوی احترامي د کسات اخستو په موخه د فدایي حملو لړۍ
لاسپوڅي مذهبي مشران ورته حلال حرام کړي او حرام پیل کړې، دا بریدونه په صلیبیانو باندې سخت مرګوني

حلال کړي او د صلیبیانو ګټې خوندي کړي.

ښه بېلګه یې په افغانستان کې د طالبانو او صلیبیانو روانه جګړه ده، طالبانو د اسلامي امارت په نوم حکومت را منځته کړو، خو غربي نړۍ ورته سترګې برګې کړې، د څه کم پنځوسو هیوادونو په ملتیا یې پرې نظامي یرغل وکړو، په زرګونو انسانان یې تر خاورو لاندې کړو، ځیني یې د باروتو په لمبو کې تریتم کړو، کیمیایي اسلحې یې پرې استعمال کړې، چې له کبله یې په ټول هیواد کې په زرګونو ماشومان، سړي او ښځې په قسم قسم رنځونو اخته شوو، په زرګونو افغانان په ځانګړې توګه طالبان تر اوسه پورې په خپل هیواد او خارج کې په بندیخانو کې پراته دي.

په افغانستان کې هره شپه د جهنم له شپو څخه کمه نه تیریږي، په خواړه خوب ویده مسلمانانو باندې ډرون حملې او بمبارياني کیږي، او نابېره پرې چاپه اچول کیږي. له مسلمانانو څخه لوری ورک دی چې کوم لوري ته لاړې شي، نه یې د کرزي اداره ستونزي ور حل کولای شي او نه پرې صلیبیان رحم کوي، طالبان له دې سختو حالاتو څخه مجبور شوو د دوی په خلاف یې په تش لاس سخت غبرګون ښکاره کړو، او له صلیبیانو سره په جګړه

او درانده تمام شوو، له هغوی سره د دې بریدونو څخه د خلاصیدو بله هیڅ چاره نشته، نو ځکه دوی همداسې مشهورو څېرو ته مراجعه وکړه، تر څو فدایي عملونه د دې لپاره غیر شرعي اعلان کړي، چې صلیبیان له مرګ څخه وژغوري، خو دې مسلمانانو مشهورو څېرو له مخکې او شاته کتو څخه پرته، د ځان وژنې او استشهادي له توفیر څخه پرته، د مظلوم او ظالم له تمیز څخه پرته، د مسلمانانو د ګټې او تاوان معلومولو څخه پرته په بیړه خپله ناسمه فتوا د دې لپاره اعلان کړه چې صلیبیان له مرګه وژغوري، دا فتوا که في الحاله یوازې د طالبانو فدایي حملې غیر شرعي ګڼي خو په حقیقت کې په صحابه کرامو او تابعینو باندې غیررسمي ګزار دی، ځکه هغوی هم ډېر ځلې په بېلا بېلو بڼو فدایي بریدونه تر سره کړي دي او د جهادونو په اوږدو کې یې له خپلو ملګرو سره په مرګ بیعتونه کړي.

له بل لوري څخه د همدې فتوا په ذریعه له طالبانو څخه غیر رسمي غوښتنه شوې، چې په صلیبیانو فدایي بریدونه مه تر سره کوئ، هغه مه وژنئ بلکې وسله ورته کیږدئ.

په ځینو وختونو کې سړی په تعجب کې ولویږي،

بوخت شوو، طالبانو مجبورا له هر قسم تکتیک څخه چې اسلام د تېر ټول دور او تاریخ په نسبت له بدترین حالت
کار واخست تر څو دښمن په ګونډو کړي، طالبانو دښمن او بدترین دښمنانو سره مخ شوی دی، د تیر ټول تاریخ په
ته په لارو کې ماینونه خښ کړو، جبهه ایزې جګړې یې نسبت د لومړي ځل لپاره په نړیواله کچه د قرآن عظیم
ورسره وکړې، د دښمن په مرکزونو یې سخت بریدونه الشان سپکاوی وشو، د رسول الله(ص) په شان کې

گستاخانه حرکات ترسره شوو، په اسلام ښکاره نیوکي کیږي، په اسلامي هیوادونو نظامي یرغلونه وشوو، اسلامي شعائر تر پښو لاندي شوو، که د جمهوریت له لاري یا نظامي حرکت له لاري مسلمانان واک ته رسیدلي، هغوی له واک څخه لري کړل شول، اسلامي نظامونه ختم کړل شوو، مسلمانان ترهګر ونومول شوو، د څه کم پنځوسو هیوادونو له لوري په افغانستان نظامي یرغل وشو، په زرګونو افغانان په شهادت ورسول شول، بې دیني او فحاشي په اسلامي ټولنو کې خپره کړل شوه، خو جنابان د کافرانو له لوري یو ناوړه عمل هم نه غندي او نه یې د حرمت او عدم جواز فتوا ورکوي، نه د عرفات په مبارکه ورځ چې د ټولي دنیا مسلمانان هلته جمع وي، مسلمانانو ته د داسي ناوړه کارونو په اړوند څه لارښوونه وشوه، نه یې یوه ورځ د کافرانو په دسیسو او پلانونو خبر کړل، نه یې د کافرانو کوم عمل وغندل، خو د ځمکي په سر




هغه ځانګړي انسانان چې نه چا په زرو راوستی وي، نه یې فدایي حملې ته تشویق کړی وي، نه یې ترینه غوښتنه کړي وي، د الله او رسول الله په مینه کې له اسلام څخه ځان په داسي توګه قربانوي، چې ګڼ صلیبیان هم د مرګ کندي ته وردیکه کوي او د خپل قرآن او رسول الله (ص) د بې احترامي انتقام او کسات اخلي، د دوی له دې عمل سره کافران ضعیفه کیږي، او مسلمانان پرې ځواکمن کیږي، نو دا جنابان را پاڅېدو او دا عمل یې له کوم توپیر او تفکیک څخه پرته ناجائز اعلان کړو.

له دې سره یوه پخوانۍ قصه را په یاده شوه، زما ماما چې دماغي حالت یې ښه نه وو، هغه چاته چې له ده سره جنجال کول غوښتل او ډېر ورته په غصه وو داسي وویل: رسول الله(ص) فرمایلي چې څوک په ولاړه غصه شي نو کیني دي، هغه کس ژر کیناستل. ماما بیا ورته وویل: څوک چې په ناسته غصه وي نو باید څملي. هغه کس ورته وویل: قسم په الله که درته څملم، ځکه بیا خو مې ته وهې: نو دوی هم طالبانو ته ضمنا داسي مشوره ورکوي، چې دا فدایي بریدونه غیر شرعي دي، لاس ترې په سر شه او دښمن ته کلار څمله، چې سم مو برابر کړي.

پکار خو دا وه چې دوی له صلیبیانو څخه غوښتنه کړي وای چې د افغانستان له اشغال څخه لاس په سر شي او د جائز او ناجائز له فتوا څخه پرته یې له طالبانو غوښتنه کړې وای چې فدایي بریدونه دي نه پرې کوي تر څو هغوی پښې سپکې کړي او په اخیر کې یې له امریکایانو څخه جدي غوښتنه کړي وای چې جزیرة العرب څخه دي لاړشي، د ریاض مشهوره اډه دي ختمه کړي، کویت نه دي ووځي، عراق دي مسلمانانو ته وسپاري، د اسلام توهین دي نه کوي، په رسول الله(ص) پسې دي سپکې سپوري او ناوړه فلمونه نه نشروي، خو دوی د دې ټولو په ځای د صلیبیانو د خوشحالي لپاره په فدایانو بد وایې د هغوی مرګ حرام ګرځوي، باور وکړئ، چې د فدایانو له ازار څخه چا بازار موندلی نه دی او له دې ناسمه یو طرفه فتواګانو سره به د فدایانو لړۍ نوره هم په چټکۍ شي، دښمنانو ته به یوه تنګه کړۍ شي او د خپلو غوښو او هډوکو په ذریعه به د اسلام دښمنانو ته ستر پیغام د تباهۍ شي.



# دامریکايي جنرالانو پرله پسې رسوايي

شاهد

دروان افغان جهاد له برکته ددې عصر دکسری او قيصر (روس او امريکا )بتکدې اودغرور مانۍ راونړيدې او داشربانو (حشربانو ) يوګڼ هيوادېزلښکرد(۴۲ ) ملکونولويديځ تاړاک هم دادی وروستۍ مرګاني سلګۍ وهي.

ددې مبارک جهاد دحقانيت اوکرامت نوراني وړانګو لاله مخکې نه دګرد کفري ځواک مصنوعي سترګې بريښولې وي اونوريې نه جنرالان او نه هم سياسي مشران ددې وس لري چې دسباني سياسي برخليک دلارنقشې په اړه يې کوم ډول معقول لرليد ولري ،ددوئ پرله پسې تزلزل او بريښنايي رکود نور ددوئ دتيورسنانو حوصله ختمه کړي اوګړګوزی يې خيژې.

دافغان وسله وال جهاد دليزرې بريښناوو معنوي ارزښتونودادی هغه امريکايي جنرالان هم د خپل عمل درسوايي په لمبوکې وسوځول چې ددې يرغلګرهيواددکانګريسوالو په تول پوره اودباورپه رايويې دخپل پوځ دبري سرنوشت هم ورسره تړلی و !

دوئ ته يې ځکه دباور رايه ورکړې وه چې دافغان مجاهدينو څخه به ميدان ګټي او دامريکايانولويدلی بيرغ به بيرته ځوړندوي ،خو هسې ونشول نوريې هم پسې وشرمول او په خپل شراب او کباب يې دتعيش له تورو عينکو داسې يوه لويه قضيه ليدله چې له هغې سره که له يوې خوا داسلامي امت هيلې پيوند وي نو له بلې خوا لويديځو اشربانو ته په نړيوال کچ حياتي مسله وه، چې دې وروستيو کې نړيوالو رسنيو په خپلو سرخيو داسې خبرونه په تندو ليکل چې: جنرال ډېوېډ پيټرايس چې په افغانستان کې د ناټو او امريکايي ځواکونو د لوی قوماندان په توګه يې دنده ترسره کړې، تېر کال د ډسيمبر په مياشت کې تر متقاعد کېدو وروسته د سي ای اې د مشر په توګه وټاکل شو.

ويل کېږي، چې له جنرال پيټرايس سره له دې چې واده يې کړی، له يوې بلې ښځې سره يې نامشروع اړيکې درلودې او په دې اړه د خبرونو تر خپرېدو وروسته يې استعفا ورکړې ده.

بلخوا امريکايي رسنيو ليکلي، چې ډېوېډ پيټرايس د سي ای اې غړو ته په يوه ليک کې ليکلي: ((سره له دې چې زه له تېرو ۳۷ کلونو راهيسې واده شوی سړی يم، خو له دې سره سره له يوې بلې ښځې سره د اړيکو ساتلو تېروتنه مې کړې

ده، د یوه واده شوي سړي او د سي ای اې په څېر د یوې ادارې د مشر په توګه زما لپاره داسې کار نه و په کار.))

جنرال پیټرایس په **۱۹۵۲** زېږدیز کال په نیویارک کې پیدا شوی او په همدغه ښار کې لوی شوی دی، هغه په **۱۹۷۴** زېږدیز کال کې د ویسټ پواینټ په نوم له پوځي اکاډمۍ څخه فارغ دی.

**هغه په ۲۰۰۳** زېږدیز کال کې د لومړي ځل لپاره په عراق کې دنده پیل کړه او د ۱۰۱ هوایي کنډک د قوماندان په توګه وټاکل شو.

تر دې وروسته نوموړی په **۲۰۰۷** زېږدیز کال کې په عراق کې د امریکایي جنګي ځواکونو د قوماندان په توګه وټاکل شو.

بیا په ۲۰۱۰ زېږدیز کال په افغانستان کې د امریکا او ناټو ځواکونو د قوماندان په توګه وټاکل شو.

ویل کېږي، چې په افغانستان کې د قوماندانۍ پر مهال د پټو عملیاتو ترسره کول زیات شول او په ځانګړې توګه په پاکستاني قبایلي سیمو کې یې پر بې پیلوټه هوایي بریدونو زیات ټینګار کاوه.

ورپسې څو ورځې پس دا خبرونه هم خپاره شول چې پکې لیکل شوی وه چې:

په افغانستان کې د ناټو له عمومي قوماندان څخه د نامناسبو اړیکو په خاطر تحقیقات روان دي!

په افغانستان کې د امریکا او ناټو له عمومي قوماندان څخه د دې تور د سپینولو لپاره تحقیقات روان دي چې له یوې ښځې سره یې نامناسب تماسونه نیولي دي.

د ناټو پر عمومي قوماندان جنرال جان الن دا تور یوازې څو ورځې وروسته له دې لګول کېږي چې د سي آی اې رییس او په افغانستان کې د نړیوالو ځواکونو عمومي قوماندان جنرال پیټرایس له یوې ښځې سره د اړیکو د لرلو په خاطر له خپلې دندې استعفا وکړه.

**نن دادی دجنسي اړیکوقضیه هم دومره په شدومد څېرېږي چې کله پرې (CIA)مشرله دندې شړې او کله پرې کابل کې خپل لوی جنرال شرموي ددې جوت ثبوت دی چې دا جنرالان نور دمجاهدینوپه وړاندې ناکام شوي اوپداسې بهانو جوړولو یې نور له صحنې شړي .**

پیټرایس د جمعې په ورځ وروسته له دې استعفا وکړه چې له پردۍ ښځې سره د ده پټې اړیکې افشا شوې. د امریکا دفاع وزیر لیون پنیټا نن په یوه اعلامیه کې ویلي، ایف بي آی یا د امریکا فدرالي تحقیقاتو اداري یوه دوسیه وروړې چې په هغه کې په افغانستان کې د ناټو او امریکایي ځواکونو عمومي قوماندان جنرال جان الن له یوې ښځې سره په نامناسبو اړیکو تورن شوی دی.

راپورونه وايي چې ایف بي آی د جنرال جان الن او جیل کیلي ترمنځ، چې ویل کېږي د پیټرایس د کورنۍ پخوانۍ ملګرې ده، په زرګونو مخه خبرې (ممکن ایمیلونه) کشف کړې دي.........................................

شک نشته چې په لوید ځه نړۍ کې داډول اخلاقي فسادات چې رضایت پکې وي کوم ډول جرم ندی او دشراب او فحشا کلبونه جوړول ددوئ

له طبعي ارتیاوو څخه وي ،تردې چې ددوئ مذهبي پاپان هم دکلیساووپه داخل کې داسې جرایمو باندې روږدې وي او وخت نا وخت ترې مطبوعات دداسې نامشروعو اعمالو خبرونه دنړیوالو تر قضاوت پورې رسوي ،له بده بخته چې دوئ ځانونه دیوه آسماني کتاب پیروان هم بولي خو بیا هم داسې نامشروع جنایات کوي چې یوه آسماني کتاب هم ورته اجازه نه یې ورکړې ،تردې چې کله نا کله داسې هم شوي وي چې ددې پاپانو له صغایرو سره هم دبدلمنۍ خبرونه خپاره شوي دي او دې په اصطلاح !! بشر دوستانو هم ددې سخته غندنه کړې وي.

ددا سې مسایلو په مورد کې دمحترم امیرالمؤمنین هغه غبرګون ډیر پرځای دی چې دهغه وخت دامریکا دجمهور یس ( بل کلنټن ) او( مانیکالی ویسنکي ) ترمنځ داخلاقي فساد یا زنا کومه پیښه رامنځ ته شوه او ده وویل چې که چیرته هغه دلته وی نوزمونږ د شریعت مطهره په رڼا کې پرې دسنګساریدو یا په تیږوباندې دوژلو حکم شوی وی او داهغه سزا ده چې شریعت زناکار ته ټاکلې ده ................................

اوس چې زمونږ مجاهد ولس دداسې سترو مجرمینو سره په جهادبوخت دی چې پخپله هم په ځان دجنایت اعتراف کوي او خپل ولسونه یې هم مجرمین بولي او دوئ په عین وخت کې دیوې داسې حیواني دیموکراسۍ لپاره هلې ځلې کوي چې نه له اسلامي کلتوراو نه هم له کوم مهذب بشري تهذیب سره اړخ لګوي ،نه دخپل حقیقي خالق احکامات مني اونه یې دمخلوق متقابل احترام کوي، نو ښایې چې پداسې صورت کې دبرې پرښتې رانږدې وي او ژربه وي چې دفتح کوتره مو پر جهادي مقاومت راوالوزي.

لکه چې مو وړاندې ورته نغوته وکړه افغان جهاد یوازې دا نه چې دیرغلګرو پوځي زورېې ورمات کړ ،بلکې نړۍ کې یې ددوئ شان او شوکت هم ختم کړاو ددوئ داسې جنایات او بشري جرایم یې رابرسیره کړل چې اوس یې دوئ پخپله هم په یادولو شرمیږي او دوئ یې له لویې رسوایې سره مخامخ کړل ،دزنا نامشروع عمل په لویدیځوالو کې ورځنی معمول دی خو چې دوئ یې تردې سرحده راورسول چې آن دمذهبي محاکمو پرځای یې ددوئ پخپله هغه استخباراتي حلقې چې یوازې دخارجي مداخلې او داخلي امنیتي مسایلو ته ځیروي نن دادی دجنسي اړیکو قضیه هم دومره په شدومد څیړې چې کله پرې (CIA) مشرله دندې شړې او کله پرې کابل کې خپل لوی جنرال شرموي ددې جوت ثبوت دی چې دا جنرالان نور دمجاهدینو په وړاندې ناکام شوي اوپداسې بهانو جوړولو یې نور له صحنې شړي.

داهماغه جنرلان وه چې زمونږدهیوادځوانې ښځې یې کونډې کړې ،ماشومان او سپین ږیرې یې په سپیرو خاورو ننه ایستل او په معصومو ښځو یې له هوانه سره اورونه بل کړل ،نن الحمدلله دادی له بدلمنۍ ،بدناموسۍ او شرمیدلې رسوایې سره له پوځي وظایو تښتي او ځای یې نور نیسي ،داددې مظلوموانسانانو دآهونولامل دی چې دا معززجنرالان چې لکونوعسکروبه ورته سلامي کوله خو نن له ډیروبیغورونو او حسرتونو سره مله له دندو شړل کیږي او نهیلې له دفترونو وځي ،امید دی چې داخرت سزا به یې ډیره لویه او تردې به ډیر نور هم رسوا شي !

# خون سرخ امریکایی و خون سفید افغان !

شبکه اطلاع.....

در این نبشته مختصر منظور از خون سفید و خون سرخ , کرویات خون نیست. خون همانطوری که می دانیم در بدن همه انسان ها دارای کرویات سرخ و کرویات سفید است, ولی قرار معلوم خون افغانستان متفاوت از خون امریکایی است !

شاید خون امریکایی سرخ سرخ و از افغان سفید سفید باشد.

در وحله اول این تیوری عجیب به نظر می رسد , اما در عمل یک حقیقت تلخ پذیرفته شده است. در بدل ریختن خون سرخ باید میلیون دالر پرداخت ولی در بدل ریختن خون سفید چند صد دالر کفایت میکند. چه باید کرد؟ ملک بی بازخواست است.

اگر افغان خون افغان را می ریزد , مقامش بالا می رود و از جمله خون سرخان بحساب رفته رهبر و قهرمان و... می شود و نباید گفت که بالای چشم اش ابرو است. این آقا زادگان خون سرخ شده که هر کدام هزاران سر سبز بر باد داده اند, به مقامات بالا رسیده و موتر های ضد گلوله برای شان پیشکش شده و هرکدام دارای چندین محافظ و بادیگارد مسلح گردیده و اگر(الف) تا (ی) برای شان گفته شود در یک اشاره چندین سر سبز دیگر را بر باد خواهند داد و.....

و اما اگر یک امریکایی (خون سرخ) ,(خون سفید ) یک افغان را بر زمین ریزد چه اتفاق خواهد افتاد؟ !

هیچ !

بلی هیچ اتفاقی نخواهد افتاد !آخر خون افغان ریختن به مثل آب نوشیدن است. ساده و آسان. هیچ مقامی جرات بازخواست ندارد و اگر فرضا طور تصادفی مرجع دلسوزی هم پیدا شود به جوابش گفته خواهد شد (تروریست بود. طالب بود. القاعده بود و.... )

بلی دیروز متجاوزین روسی و گماشتگان خلقی و پرچمی شان خون افغان را تحت نام( اشرار, جاسوس پاکستان, گماشتگان امپریالیزم امریکا و ارتجاع منطقه و چه و چه...) بی خیال می ریختند و بازخواستگری وجود نداشت و امروز عساکر امریکایی و متحدین شان همان کار را انجام می دهند و بازهم بازخواستگری وجود ندارد.

ریختن خون افغان بیشتر از بیست و هفت سال است که ادامه دارد. روس های متجاوز بیشتر از یک و نیم میلیون افغان را از دم تیغ زهرآگین تجاوزشان گذشتاندند و هرگز غرامتی بابت آن همه خون ریخته شده مردم ما نپرداختند. چرا؟ چون خون افغان گویا سفید است و تاوان ندارد.

بعدها دیدیم که یک عده ... تنظیمی (با سوء استفاده از نام پاک مجاهد) چون مور و ملخ ریختند و تا توان داشتند خون افغان ها را ریختند و شدند (خون سرخ) و به ریاست جمهوری و قهرمانی و مارشالی و وزارت و صدارت و سفارت رسیدند و کسی را یارای آن نبود که بازخواست کند.

مدتی نگذشته بود که امریکایی ها در جستجوی (اسامه بن لادن) به افغانستان هجوم آوردند و باز هم خون افغان چون جوی بر زمین جاری گشت. در این کار امریکایی ها به راهنما های بومی و خونریزان دیروزی ضرورت داشتند تا از تجارب طولانی خونریزی آنها سود ببرند. کور موشها از سوراخ ها برآمده و در خدمت اربابان امریکایی خویش قرار گرفتند و در حق مردم مظلوم افغانستان کردند آنچه نباید می کردند.

بازهم خونریزان, خون افغان ریختند. بازخواستی وجود نداشت چون همه مردم افغانستان خون(سفید) بودند و طالب و القاعده.

جنگجویان (خون سرخ شده) آنچنان مست کشتار هموطنان شان بودند که کشته های دست عساکر امریکایی را بار دیگر به گلوله زده یا سر می بریدند. مرده کشی سرک به سرک و کوچه بکوچه آغاز شد. این خونریزان (خون سرخ) شده به مرده کشی هم قناعت نکرده و به تحقیر و توهین به اجساد مردم پرداختند که صحنه های دلخراش آن در پرده های تلویزیون های جهانی و صفحات روزنامه ها و مجلات و اینترنت پی هم به نشر می رسید. بازهم بازخواستی وجود نداشت.

برگردیم به اصل مطلب و آن اینکه خون امریکایی سرخ و از افغان سفید است. خون سرخ بازخواستگری دارد و خون سفید ندارد. هر خون سرخی که ریخته میشود در بدل آن باید میلیون دالر پرداخت و خون سفید که ریخته میشود مجانی است و فرضا اگر نظر به فشار مطبوعات آزاد جامعه جهانی مجبور شوند خون پولی به (خون سفیدان) بپردازند البته از گاو غدود خواهد بود.

توجه کنید به این خبر:

یک باشندۀ لغمان تاوان پسران مجروح اش را از امریکایی ها مي خواهد!

یک تن از باشندگان لغمان مي گوید که نیروهای امریکایی دو پسر وی را مجروح نموده و صدها هزار افغانی وی را خساره مند نموده اند، اما در بدل این کار، تنها ۴۰ هزار افغانی به وی پرداخته اند.



موصوف مي گوید که چهار مرمی بر یک پسر وی به نام زمری اصابت نموده که یک مرمی بر دست و دیگر آن بر ناحیه شکمش اصابت نموده، همچنان پنج مرمی دیگر، بر ران پسر دیگر وی به نام امیر حمزه اصابت نموده است.

به گفتهٔ موصوف ، تداوی پسرانش را خودش کرده ، ۳ هزار سی سی خون به آنها خریده و ده ها هزار افغانی دیگر را نیز مصرف نموده است.

موصوف افزود: رئیس استخبارات برایم گفت که نیروهای امریکایی موتر معاون مرا نیز مورد هدف قرار دادند اما از عهده ما بیرون است ، آرام نشسته ایم و پرسان آن را نیز نمی کنیم.

به گفته موصوف ، مقامات دولتی به وی توصیه نموده اند که اگر نیروهای امریکایی هر قدر پول که به وی بدهند ، باید به آن قناعت کند.

اما عبدالرزاق مي گويد كه پسران وی برای همیش معیوب شدند ، آیا این خساره کم است که آنها متقبل شده اند ؟

این است نمونه (خون سفید ) بودن افغان ها یعنی بابت هر افغان معیوب (20هزار افغانی ) واقعا ریختن خون افغان چه آسان چه ارزان است.

ولی و اما ! برگردیم به (خون سرخ ) عساکر امریکایی که ریختن آن چه گزاف است و چه بازخواستی در قبال دارد.

دادگاه فدرال ایالت یوتاي امریکا ، روز دوشنبه، پدر یکي از زندانیان گوانتانامو را به پرداخت ۱۰۲ میلیون و ۲۰۰ هزار دالر محکوم کرد.

خبرگزاري فرانسه از واشنگتن گزارش داد ، بر اساس حکم صادره توسط پل کاسیل، قاضي این دادگاه، احمد سعید خضر مبلغ ۹۴ ملیون و ۵۰۰ هزار دالر از مبلغ فوق را باید به خانواده کریستوفر سپیر سرباز امریکایي که در جولای سال ۲۰۰۲ در افغانستان کشته شد ، پرداخت کند.

بر اساس این حکم، خضر همچنین مبلغ ۸ ملیون و۱۰۰ هزار دالر را باید به ین موریس که یک چشم خود را در افغانستان از دست داده است، بپردازد...

بلی ! در بدل ریختن خون (سرخ ) یک امریکایی باید بیشتر از نود و چهار(94) میلیون دالر پرداخت و در بدل ریختن خون(سفید ) افغان هیچ.

در بدل معیوب شدن یک امریکایی (خون سرخ ) باید بیشتر از هشت میلیون دالر غرامت پرداخت و در بدل معیوب شدن یک افغان(خون سفید ) هیچ. در بهترین حالت که ماجرا به خبرنگاران خارجی درز پیدا کند در بدل معیوب شدن یک افغان(خون سفید )صرف 34 دالر پرداخت می شود.

این است فرق خون سرخ و خون سفید.

اختلا ف طبع بیدل در لباس افتاده است
ورنه یک رنگ است خون در پیکر
طاووس و زاغ



به این خبر هر چند کهنه توجه کنید :

پدر یکی از زندانیان گوانتانامو به پرداخت ۱۰۰ میلیون دالر محکوم شد.




دې ولایت کې مجاهدین په خورا فاتحانه دریځ کې دي دمجاهدینو ورځنۍ عملیات هم په منظم شکل جریان لري چې همیشه په کې دښمن ته درانه تلفات اوړي .

**پوښتنه** : محترمه که له هرڅه وړاندې دخپل ځان او دندې په اړه معلومات راکړئ ، مننددوی به مو یو ؟

**ځواب** : بسم الله الرحمن الرحیم ، الحمد لله والصلوة والسلام علی رسول وعلی اله وصحبه وبعد ، زما نوم ملامحمد اسمعیل دمیراحمد زوی دبلخ ولایت اوسیدونکی یم ، داسلامي امارت له تاسیس راهیسې داسلامي امارت خادم پاته شوی یم ، بیلابیل جهادي وظایف مې ترسره کړي دي ، او اوس فی الحال دپروان ولایت دجهادي چارو دعمومي مسؤل په صفت مقدسه جهادي دنده اجراء کوم .

**پوښتنه** : دپروان ولایت داوسنۍ جهادي وضعې په اړه که عمومي معلومات راکړئ ؟

**ځواب** : دپروان په ولایت کې لله الحمد جهادي چارې له معمول سره سم په عادي شکل پرمخ ځي ، دولایت په ټولو ولسوالیو کې مجاهدین حضور لري او ډیری سیمې یې تر کنترول لاندې دي ، پروان ولایت سره له دې چې دکابل له همجوارو ولایاتو څخه دی او دشمال له خوا دکابل دروازه بلل کیږي دغه راز دیرغلګرو ترټولو ستره اډه باګرام هم په همدې ولایت کې قرار لري چې له همدې امله دښمن ورته ډیر متوجه دی خو بیا هم لله الحمد په

**پوښتنه** : سږکال دالفاروق عملیاتو په لړ کې مجاهدینو دهیواد په ډیرو برخو کې مهمې لاسته راوړنې درلودې ، هغه کوم اساسي تغیرات وو چې دالفاروق عملیاتو په لړ کې دپروان په ولایت کې رامنځته شول ؟

**ځواب** : دالفاروق عملیاتو په لړ کې موږ په پروان ولایت کې څومهمې اساسي لاسته راوړنې درلودلې چې غواړم دلته یې په لنډو یادونه وکړم .

۱ - دعملیاتي او مفتوحه سیمې پراختیا :

سږکال په پروان کې زموږ یوه ستره لاسته راوړنه داوه چې خپل عملیات مو په مؤثره بڼه دولایت ټولو اطرافو او اړونده سیمو ته پراخ کړل ، پخوا زموږ ډیر عملیات دکوه صافي ، سیاګرد او شینوارو په ولسوالیو کې محدود وو او په نورو سیمو کې خورا کمرنګه وو ، مګر سږ کال موږ په باګرام کې ښه قوي عملیات درلودل ، په شیخ علي ولسوالۍ کې څو ځله مؤثر عملیات وکړل چې ددښمن اکمالاتي کتارونه په کې له منځه لاړل ، دپروان مرکزدغه راز دجبل السراج په ولسوالۍ کې مو په بیابیا مؤثر عملیات درلودل ،په دې سربیره موږ له وړاندې په مفتوحه سیمو خپل کنترول نور هم مضبوط کړ.

۲ - ددښمن دعملیاتو په وړاندې مقاومت :

